بس کیدلاي اوسیا سی حل هم بی مفهومـــه کلمـه ده .

تیري اوتجاوز د امپریا لیزم خصلت دي چی شوروي خپل دا خصلت زمونږ پـه هیواد کښـی بربنـډ وښود . پـه شوروي کښی د فاشیستی نظام د حاکمیت موجودیت اوپـه افغانستـان کښی د هغه لاس پوڅی حکومت د جګړي د اساسی عواملو پـه توګه عمل کوي . ترڅـو پوري چی د دي فاشیستی طاقت عسکراو مزدور حکومت پـه افغانستان کښی وي د جګړي د ختمیدلو سوال نشی مطرح کیدلی . بله داچی پـه جګړه کښی دا خل دواړه قوتونه د جګړي کولو څخـه معین اهداف لري ترڅو پوري چی د دي دوه متخاصمو طاقتونو څخه یوخپل هدف ته نه وي رسیدلی د جګړي ودریـدل ممکن ندي . اودا هم ښکاره ده چی د دي دواړو قوتونو اهداف سره مخالف اودا سـ

نه پخلاکيد ونکس دي چې د يو په بـري کښې
د بل ما تې پرته ده •

د ملي پخلا توب طرحـه د روسا نو پـه
خدمت کښې ده او روسان غواړي د دي څخه
پـه استفادي سره نه يوا ځې مجا هدين پـه
نظا مي سا حه کښې غا فله کړي بلکه غواړي په
سيا سي ساحه کښې د غلام نجيب د حکومـت
اجتماعې پا يـه مضبو طـه کړي اوپر افغا نانـو
وروسته د دومره شهيدا نو ورکولو او تکليفونـــو
گا للو د روس‌اود هغه د مزدورا نو غلامي قبولـه
اوحا کميت ومنې •

ځينې بې خبـره خلك شا يد فکروکړي چې
روسا نود ملي پخلا توب طرحې سره د مارکسيزم
نه عدول وکړ- خوبا يد پـه ياد ولروچـــې
دا سيا ست د مارکسيزم -لينينزم د مشخـص
تطبيق نتيجـه ده او روسا نو په دي طرحـــې
سره وښو دله چې دوي غواړي اوسـ

افغانستان کښې مارکسيزم خلا قانه تطبيق کړي خود نيکه مرغه چې د دي خلا قيت موقع يې د لاسه وتلې ده ۰

د مارکسيزم د اصولو په اساس کيداي شي پداسې هيواد کښې چې هلته اقتصاد نا موزون رشد کړي وي د سوسيالستي انقلاب په ذريعه د پرولتاريا د ديکتاتوري دولت تشکيل شي او د داسې دولت په مرسته د هيواد د ننه هغه سيمې چې د تاريخي مرحلې په لحاظ وروسته پاتې وي سوسيالېزم ته کش شي ۰ دا هغه طرحه وه چې د اکتوبر د انقلاب پواسطه په روسيه کښې تطبيق شوه او يو سوسيالستي مقتدر دولت يې مينځ ته را وړ ۰

همدا رنگه په وروسته پاتې هيوادونو کښې د کمونيزم د اقتدار د پاره يوه بله مارکسيستي — لېنينستي طرحه مينځ ته راغله چې په شروع کښې حتى د روسيه د کمونست حزب له

خوا هم رد شوه ـ ولی وروسته
ستالین هغه یو لوی ابتکار وکړلو . هغه
دما ئو تسی تونګ په رهبري د چین دکمونست
حزب طرحه وه ـ چی د کمونست حزب په
رهبري یی د چین په وروسته پاتی هیواد کښی
یو قوي سو سیا لیستی دولت جوړ کړ . د چین
په جامعه کښی د انقلاب کولو د پاره اصلی مرکز
د کمونست حزب او د هغی په رهبري اردو وګڼل
شوه او دي حزب ټولو وطنپالو احزابو او
شخصیتونو ته چی د امپریالیزم اوفیودالیزم
مخالف وو د وحدت لاس وغزولو او هغه
یی په متحده ملی جبهه کښی سره را ټول کړل
او د انقلاب د کامیابید لو وروسته یی په
ائتلاف سره د چین ولسی جمهوریت جوړ کړ .
چی وروسته دلزي مودي د اولسی جمهوریت
په یو داسی سو سیالستی قدرت بدل شو
چی نه یوازي ساده متحدین یی اعدام او
زندانی کړل بلکه د کمونست حزب ابتدایی ـ

طرا حان یی هم د فیودا لینم اوبورژوا زي د
نما ینده گا نو پــه تور تورن اواعدام کړل ٠
کــه د مارکسیستی انقلا بونو تاریخ تـــــه
وګورو نوهله را ته خرګند یږي چی د رو سا نـــو
د ملی پخلا توب سیا ست د مارکسیســـــنم
لینیننم پــه خدمت کښی دي ٠ ورو ستنی حوادث
به دا خرګنده کړي چی رو سان بــه د دیموکراتیك
ګوند لیاره په عسکر اوپولیس با ندي تکیـــــه
وکړي اوپه ملی پخلا توب کښی نور تړول پو ستونه
به مخا لفینوته پیشنهاد کړي ٠ او دا د فریدریك
انګلس پــه هغه قول عمل کول دي چی وایی :ـــ
دولت یعنی " مسلح قدرت او زندان " ٠ د ټولو
مارکیستا نو پــه اتفاق سره دا دوه قدرتـــه
د سیا سی قدرت نخښــه ده ـ داچی د هـــر
چا پلاس کښی وي هغه د جا معی حاکم دي ٠
د دي پــه وسیله کیدلاي شی په لازم وخت کښـــی
مخالفین پــه اسا نی سره د میدان څخــــــه

وویستل شی

که تاریخ ته خیر رشو تول انقلابونــــه
پــه خپل عمل سره همدي ته متوجی وی چــې
ځنګــه د مخالفینو نظام طاقت ختم ــ د
مخالفینو زندان له مینځــه ولاړ شي ۰ اود هغی
پرځای خپل نظام طاقت ځنګــه وساتــې
او د زندان پــه غیږ کښي یې څوکړ ساتل شي ۰
کله چې روسانو په افغانستان کښی کودتاه
وکړه اودا د وه قدرتـه (عسکر اوزندان) پــلاس
ورغلل د جامعی پــه تحلیل کښي غلط شــول
هغوي وغوښتل چې مارکسیستي اصول د لوی ابتکار
سره عملی کړي نو ځان یې د جامعی بادارګڼلو
او برژنیف خیال وکړلو چې مارکیســـزم یې
پــه "خلاق" ډول سره عملی اولینینزم یې د "نــوي
تیوري" سره اشنا کړيدي ۰ که نه نو دلینین د نصیحت
پــه اساس لازم وو چې پــه افغانستان غونــدي
هیواد کښي سوسیالیستان پدي پوه شوي وي

چې د یموکراتینم څه ته وایی ۰ او همداسی
د دوي په ذریعه باید دیمرکراتان د سو
سیالستانو حد ته پورته شوي وي ـ ترڅو
په دي هیواد کښی د دوي په شرکت سره سو
سیال د یموکراسی مینځ ته راغلی وي ـ داسی
سو سیال د یمرکراسی چی هغوي جامعه
د کمونیزم په طرف رهبري کړي او وروسته
د خوکالو خلقی گوند په کمونستی څیره
میدان ته را وتلی وي ۰ که چیرته روسانو
د لمړي سرخخه چی زمونږ د ملت آگاهی
د کمونیزم او د هغی د سیاستونو څخه کمه
وه د مارکس ـ انگلس ـ لینین د مزورانه
سیاستونو اولاربنونو څخه گټه اخیستی وي نو
زمونږ د انقلاب پرا باسونه به یی لا زیات
کړي وي او په انقلاب کښی به مجاهدین
د زیاتو مشکلاتو سره مخامخ شوي واي ۰
خو اوس زمونږ ملت د دوي په اصلی

ما هیت پوه شوي دي او مخکښې د خپلو رهبرانو د نظر ورکولو څخه کولاي شي د روسانو په سیاست اوچا لونو باندې دا سې واقعیننا تبصره وکړي چې د روسانو اصلي هدف برېنډه وي ۰ اومجا هد احزاب هم د تجاربو په لاس ته راوړلو سره دا سې حد ته رسیدلي دي چې په سرعت سره د دښمن په نیرنگ پوهیدلا ي شي او په مقا بله کښې دا سې مد برا نه سیاست چې د پرمجا هد ملت څخه نماینده کې کوي تد وینسوي ۰

د دي دپاره چې زموږ ملت د کمونیزم د راز را زچلو تو سره آشنا شي موږ د لته د کمبو دیا سورخمر د نموني په توگه یا دوو کله چې د سورخمر ډلې په کمبودیا کښې قدرت لاسته را وړ نو د کمبو دیا څخه یې د انسا نا نود حلا لو قصا بخا نه جوړه کړه ۰ په حزبکښې شا مل روسی طرفدارانو

چې د خپلو حریفانو طاقت ولیدلــــو
نو د قدرت ته رسیدلو څخه مایوســـه
شول اوخپل بادارته یې پناه یوړه چې د
هغوي په اشاره د وینتام د مزدورو لښکروــه
واسطه دا تنبتیدلی مزدوران حمایت شـــول
اوپه کمبودیا یې یرغل وکړ ۰ چې تـــول
کمبودیا یې ملت یې مقابلې ته ودریده ـ خــو
کله چې سروخمرانو د تا ومت نورو برخو ته د
متحدي جبهې پیشنهاد وکړ د هغوي لخوا رد
شو ـ څکه چې د خمرانو ظلم اوستم لادکمبودیا
د خلکو نه وو هیر شوي ۰ خو د سروخمرانـو
ډله په موقع سره یو سیاسی مانور لاړ لــه
داسی چې د خپل تیر شوي دوران څخه یې
انتقاد وکړ اوبل پت د گوند مشری دعهدي
څخه لیري کړ ـ اوخپله برنامه یې هم دکمونیزم
څخه را بیرته کړه ۰ چې پدي وسیله دمقاومت
نوري ډلی قانع شولی اومتحده جبهه بیــا

تشکیل شوه ۰ که چیرته د مقاومت نوري ړ لی
د جګړي په اوږ د وکښی خپل فوځ جوړ نکړي
نو په وا قعی معنی غولیدلی دي ـ ځکه
سروخمرا نو که خپ له برنامه تغیر کړ له اوسیاستونه
یې د نوي تعهدا تو سره منا سب وتها کل خو
خپل تشکیلات یې لا پسی مضبوط اوپیا وړي کړ ل
اود خپلو نظا می قوتونو واك اواختیار یې متعهدینو
ته پلاسرونکړ ۰ پدي تر تیب سره کله چی جګړه
پاي ته ورسیږ ي او ویتنا میان د کمبودیا ځخه
ووځی نوسره خمرا ن د خپ ل فوځ په زور سره
کولاي شی بیا د دولت را ګی په خپل لاس کښی
را وړ ي اوټول کا غذ ي قرار د اد ونه په
اور وسیزي ۰

په افغا نستان کښی هم رو سان حا ضریږي
چی د د موکراتیک ګوند برنا مه په ړ یر منا فقت
سره یوه اسلامی برنا مه اعلان کړ ي او لکه ځنګه
چی اوس نا نجیب اونور تظا هر په مسلما نـــس

افغان قهرمان اولس د تاریخ پــه اوږ د وکښی
دخپل استقلال اوعزت د سا تلو پخا طــر پــــــــه
زرگو نو شهیدان ورکړیدي اوپه سرو وینو یې هغه
لاره ترسیم کړیده چه نسل په نسل به پــــــــري
ازاد اوخپلواك روان وي ٠ دلته د هرغلیم د ظلم کاسه
نسکوره شوي اوهریرغلگر په شا تلوته مجبور شوي
دي ٠ د دي هیواد خپك خپك د هرلوي دښمن
د لوټ ماري اوتا لان ـــ وژلو او ربړ ولو ـــسوزولـو
او ورانولو شا هد دي ٠ د دي ملك مد نیـــــــت
خا ورو سره برا بر شوي او ښا رونه یې تباه .

کوي حتی رسماً اسلامی حکومت اعلان کړي خو
پدي شرط چی د گوند تشکیلات وسا تل شو
اونظا می طا قت د دوي پلاس کښی وي • ځکه
دوي پوهیزي چی د دي د وه طا قتو نو پــــــــــه
زور سره کولاي شی ورو سته د خه مودي خپـــل
اصلی مسیر ته را وگرځی •

مونږ با ید د خپل انقلاب پــه مسیر کښــی
د گوړا گی دولت د ما تو لو پخا طر د وطـــن
پلور ونکــو د تکیه اصلی مرکز د یرغلگرو لښکـــ
د هیواد څخــه وشړ و اومزد ورگړند اونیـــم
بنده اردو یی مات کړ و ـ ترڅودا د شیطـــان
ځا له د همیش د پاره ورا نه شی • که چیرتــــــه
زمونږ ملت روسی مزدور گوند اود هغی مسلح قدرت
مات نکړي اوجهاد ود روي پـــه حقیقت کښـــی
یی د خپلی تسلیمی سند امضاً کړ یدي •

پدي با ید با ور ولرو چی دا جگړه بـــــه
اخر ود ریږي خوحوصله پکار د ه ـ را ځـــی

چې يو ځل د خپلو نيکونو تاريخ ته ځير شو
او وګورو چې په نژدې دورا ن کښې يې د انګريزانو
سره څوکاله جګړه وکړه او د جګړې وروستۍ خبره
څه وه . انګريزانو په ۱۸۳۹ کال کښې
د شاه شجاع په کارمل کولو د ٤٥ زره منظمو
عسکرو او توپخانې سره په افغانستان حمله
وکړه چې د افغانانو او انګريزي ضد وسله واله
مبارزه شروع شوه او بالاخره د ډېرو سختو او
خونړيو جګړې د پېروکا ميابيو او ماتو
وروسته په ۱۹۱۹ کال کښې يعنې د شروع
څخه ۸۰ کاله وروسته امان الله خان د سلطنت
په لمړي ورځ داسې اعلان وکړ : اي د افغا-
نستان معظم ملته ! ما په کابل کښې
د خپل پلار د سلطنت په وخت کښې
د سلطنت وکالت درلود او اوس هم د همدې
کبله د دې امانت د روند بار وکالتاً مستعصماً
بالله په غاړه واخيست . همدغو وخت چې

شاهی تاج را ته خما قهرمان ملت پسر
کیښود ــ ما لوړه وکړه چی با ید د افغا
نستان دولت د نړي د نورو مستقلو قوتونو
په خیر د ملك په خارج او داخل کښی آزاد او
مستقل اوسی ــ د افغانستان ملت د هیواد
په داخل کښی پوره آزادي لري او د هر قسم
ظلم او تیري څخه محفوظ او خلك فقط د قانون
تابع دي اوسی ۰ اجباري او بیگاري کارونه
په ټولو برخو کښی ممنوع او لغوه دي ۰ زمونږ
حکومت به په افغانستان کښی اصلاحات
وکړي ترڅو زمونږ ملت او هیواد وکولاي شی
د نړي د متمدنو هیوادونو په قطار کښی
منا سب مقام حاصل کړي ۰ زه به د هیواد د کارو
نو په مخ وړ لو کښی مشوره کول خپله رهنما
وگرزوم ۰ اي گران ملته او اي با تمیزه قومه
د خپل دین ــ دولت او ملت په ساتلو
کښی وینې او د خپل وطن په ساتلو کښی

هوښيار اوسی ٠ زه د خدایه تا سـو
او نورو مسلمانانو ته او د انسان ټول بنی نوع
ته خير او سعادت غواړم ٠٠٠٠

د دي اعلام څخه وروسته یی د ۱۹۱۹ کال
د مارچ پـه دوهمه نیټه په هند کښی انګلیسی
نائب‌السلطنه لارد چلسفورد ته خط ولیـږه
او ورته یی وليکل چی باید د ۱۹۰۵ کال پـه
معاهده کښی تجدیـد نظروشی اود افغانستان
دولت د انګلستان دولت سره د طرفینو مساوي
حقوقو پـه بنیاد یوي نوي‌معاهدي ته تیار دي٠
اودي وروسته د افغانستان دولت د انګریزي
دولت جوابـته منتظرپاتی نشو اوعملاً یی یـو
آزاد اومستقل سیاست پرمخ یووړ ٠ دي‌مسئلی
انګریزان یوي بلی جګړي ته تیارکړل چی د
افغانستان دولت د استقلال د اعلان سره
سم ورته تیاري نیولی ؤ ٠ جګړه شروع شـوه
او پـه نتیجـه کښی یی افغانانو یوځل بیـا

د توري په خوکه‌دا ۱۹۲۱ کال د نوا مبر په‌دوه ویشتم تاریخ د انگریزسره په یو مز قرارد اد لاسلیك کړ - چی د هغی په یوه ماده کښی داسی ولیکل شول :" د برتانیا اوافغانستان علیتین دولتونه یو دبل د خارجی اوداخلی استقلال حقوق تصدیق او هغی ته احترام کوي "

په دي‌معاهدي سره که څه هم دافغانستان استقلال په رسمیت وپیژندل شو ولی څرنګه چی د پادشاهانو اووزیرانو لاس‌پکښی و په هغه شان چی لازمه وه قاطعیت اوتراخره پخپلو شرطونو ټینګارپکښی نه و - اوکه پدي قرارداد ونوکښی لکه د راولپنډي د ۱۹۱۹ کال د اګست د اتی نیتی په قرارداد کښی چی علی احمد وزیرداخله په‌مښکارمدول د وزارت خارجه د تدوین شوو شروطو څخه ونبویده اود غالبه‌یواد د سرحدونو

تیا کښي د مغلوبهیواد پلاسرورکـــــړه .
د وخت پاد شا ه ورته د ملي خیا نت پـــه نتیجه
کښی فقط د وه کاله زندان هغه هم د علی احمد
پـــه خپل کور کښی تجویز کړ و او وروستهٔ ئی
کا لو یی عفوه کړ اوبیا یی خپله خوزه ورواده
کـــــــــــړه .




په هرحال را شئ چی وګورو د جګړي په
کم پړ ا وکښی زمونږ قهرمان اولس سولـــــی
ته حا ضرشویدي او د سولی آوا ز ته یی لبیک
ویلی دي . زمونږ اولس د تاریخ پـــــه اوږ د و
کښی د ډیرو بد بختیو اوتورو ورځو ســــــره
مخا مخ شویدي ولی غلیم ته یی هیڅ وخــــت
د کمز وري پـــه د وران کښی د سو لی آوا ز نـــه
دي پورته کړي ـ ځکه چی د وي با ورلـــــري
چی ژوند پـــه عزت اوشرا فت کښی دي ـ او د ا
د مقا ومت ځخه پر ته لاس ته نه را ځــــــی .
د وي هیځکلـــه د بی همتو په او بوژوند ندي

قبول کړي اوهیڅ وخت توهین اوتحقیر
نه منی ـ نوښکه یې د تل د پاره د خپل
نا موس ښخه د دفاع پخا طر توره د تیکی
را ویستلی ده ٠ که د تاریخ نژدي دوران ته
وګورو د افغان ـ انګلیس د اولی جګړي ښخه
نیولی تراخري پوري د ا انګریزان وه چی
د سولی آوا ز به یې پورته کولو ـ او همدا
انګریزان وو چی د سولی قرار داد به یې ما تولو٠
دا پدي معنی چی حتی قرار داد به یې د فر-
صت د لاس ته را وړلو د پاره امضا٠ کولو ـ نه
د سولی د پاره ٠ اوپه همغه وخت کښی که فاتح
افغا نا نو قرار داد هم امضا٠ کولو د خپلو ملی
ګټو د پاره به یې خپل ښان همیشه جګړي ته
چمتو سا تلو ٠ زمونږ ملت لکه ښنګه چی د جګړي
په میدا ن کښی پـه میړا نه جنګیدلی د سولی
پـه وخت کښی یې هم د ماتی خوړ لی د ښمن
سره خپل اخلاقی شها مت سا تلی دي ٠ ولی

خرنگه چی دي ملت یومد بر ــ هو ښیار اوملی
گټوته وفادار تنظیم نه درلود همیشــــــــه
د کامیابی اوفتح وروسته ناکام شویدي ٠ دا
ملت د چا توري د بارلا ندي ندي راغلی خو
د معاهدي د میز پــه سر د مغلوب دولت د
تعهدا تولا ندي راغلی دي ــ دا څکه چــی
زمونږ ملت د زورکا لورا په دي خوا فکرکو لــــو
چی کلــه یی یوپاد شاه ته بیعت وکړ هغــــه
اولی الامر دي اوخارجی اودا خلی امورو کښــــی
د ده وکیل دي ــ او ترڅو پوري چی په ښکاره
توگــه د دین او وطن د دښمن څخــه ملا تــړ
ونکړي د امر اجرایی په هر سړیوا جبده ٠ په
پاد شا ها نو زمونږ د ملت دا بی قید او شرطــه
نو
اعتماد د دي سبب گرزیدلی ؤ چی هغوي دخارجیا
سره په آزاد ه ول هر قسم قرارداد تړ لــــو٠
دا قهرمان ملت باید دخپلی تاریخی تجربی
نیاد دي نتیجــی ته ورسیږي چی پــه هیڅ

امیر بی قید او شرطـه با ورونکـړي ازا
آرزو هغه وخت تحقق موی چی د ملت اکثریت
چی پـه حقیقت کښی سره هیڅ اختلاف نلري او
ټولی گټی یی سره پیوند لري په یو اسلامی وحدت
سره را ټول شی ◦

مونږ با ورلرو چی زمونږ قهرمان ملت خپلی
گټی پیژنی اوهمیشـه کـه د پاد شا هانـو
پښـه پکښی میـنځ ته نده راغلی دي ملـت
خپلی گټـی ندي هیري کړي اود ډیـرو
مغلقو د رباري جملو څخـه پرته پـه ډیري
سادهگی اوصدا قت سره یی د خپلی مرچـی
پـه څوکـه خپل ملت تمثیل کړیدي ◦ دوي چی
پاد شاهی اووزارت نه غوا ړي د وطن د مداتلو
په لاره کښی په ډیره میړا نه اوقربانی سره
خپلی ملی وظیفی سرته رسوي ◦

د دي دپاره چی زمونږ ملت په دي مسئلـه
په شی چی زمونږ نیکو نو کله چی د پا شاهانو
د پا د شا هی څخه پرته د پرد و سره معا هده

امضا' کولــه هغه د شو مره سیا سی شعورو،په که
اود یو نا تح ملت د خلکو د فکري قدرت ښکار-
ندوي وه . راځی چی شا ته وګورو ۱٤٦ کاله
مخکښی یعنی د ۱۸٤۱ کال د دسمبر په
یولسم تاریخ کلــه چی انګریزا نو پــه خپلـــه
لمړ نی جګړه کښی ماتی خوړلی وه او په دي ورځ
یی د افغا نستان د ملت د نما ینده ګا نو سره
د افغا نستان شخـــه د وتلو تعهد امضا' کولو
افغا نی نما ینده ګا نو ورته لاند یني شرا یـــط
وړا ندي کړل :

۱ــ د ښا غلو ( انګریزا نـــــــــــو )
د هیلی سره سم چی با ید د جلال اباد پــه
لور د تللو پــه وخت کښی په تګ لاره کښی د مزا-
حمت څخه د خوندي سا تلو،خا طر ورتـــــــه
افغا نی مشران مقرر شی نو محمد عثمان خا ن
او شاه دوله خان د دي طرفه مقرر دي .
۲ــ د انګریزا نو لښکر په جلال اباد کښـــی

شوي دي ـ کلی یی وران شوي او با نډوتـه یی ـ او رونـه اچول شویدي په دي هیله چی د ا ملت به غا ړه کښیز دي ـ خو د دي ملت د خپلوا کـــی غو ښتنی آوا زهر وارد مخکښی څل څخه لا څـــو چنده اوچت شویدي ـ د استعمار گرو لښکري یی فناه کړي او د ظلم خا وندان یی په گونډو کړیدي را څی چی وگورو انگریزي حکومت د دي ملـــت د نا بودو لو د پاره د لارد لیتن (په هند کښـــی نائب السلطنت ) پـــه خوله څه ویلی و؟ : د انگریز لښکرو پـــه واسطـــه د افغانستان نظامی نیول بـــه تر هغه وخته دوام وکړي چی د افغانستا ن خلـــك د انگلیستان د اطا عت سره عادت ونیسی ٥٨ ولـــی همدا لارد لیتن‌وو چی د اسلام‌د لاري خپلواکـــی غو ښتونکو مجا هدینو د خپلو د وا مد اره اوسختـــو حملو پـــه واسطـــه ٢٥ کاله وروسته پدي مجبـــور کړ چی ووا یی : د سرحد منظره پـــه نړي کښـــی ساري نه لري څکـــه چی یولـــوي متمدن قدرت

د کابل څخه د انګریزي فوځ د رسید لــــو
ړومبی پشاور لوري ته حرکت وکړي څنــــــه
جائیز ندي ٠

۳ــ په غزنی کښی د انګریزانو فــــوځ
باید په تلوار اوچتکی سره د خپل تګ تیاري و
نیسی اود کابل د لاري ( نه د قندهار د لاري )
پشاور ته لاړ شی او څنګه د نه کوي ٠

٤ــ انګریزي فوځ په قندهار او نورو سیمــو
کښی باید ژر تر ژره د هندوستان په طــرف
رجعت وکړي ٠

٥ــ د امیردوست محمد خان د عسکـــــرو
د مال او اسباب (توپ خانی او نورو څخه ) چـــی
د بنا غلو سره وي ټول دی بیرته مسترد کړي ٠

٦ــ بناغلی به د لاس د وسلی څخه علاوه
توپ خانه ــ جبه خانه ــ باروت او ټوپـــک
او نور هغه اسباب چی ورلی نشی نواب محمد زمان
خان ته تسلیم کـــړي ٠

۷ــ هغه څوك چی د شاه شجاع د کورنی

څخــه دلتهپاتی کیږي دا بــه پــه بالا حصار کښې د حاجی خان پــه کورکښی وي ــ هروخت چی د امیردوست محمدخان اونورو افغانانو کورونــه د خپل عیال سره پښا ور ته را ورسیدل دوي رخصت دي چه هندوستان ته ولاړ شی ٠

۸ــ د ښاغلو فوځ چی پښا ور ته ورسید ٠ د امیردوست محمدخان د کوزنی اونوروافغانی کورنیود را تګ تدارك په ژر ونیسی اوپــه خیــر سره به یی را ولیږي ٠

۹ــ شپږ نفره با اعتباره او معتمده انګریزي ښاغلی به زموږ سره یرغمل وي هرکله چـــــی امیردوست محمد خان اونور افغانان دخپلــو کورنیو سره پښا ورته را ورسیدل دوي رخصــت دي ٠

۱۰ــ په هیڅ صورت سره باید ددوهــم پلا د پاره انګریزي ښاغلی د افغانستان د ملك آرزو ونکړي اونسل په نسل ددوي دواړو پــــه

منع کښي د دوستی او اتحاد رابطه
مضبوطه اوسی ۰ او افغانی سرکار کله چی
د خارجی دښمن په مقابل کښي مرسته
غواړي انگریزي سرکار به پدي کښي دریغ
نکوي ـ پدي صورت کښي افغانی سرکار به
د انگریزي سرکار د صلاح پرته چا سره عهد
نکوي ۰ کله که د هغی طرف نه مرسته کښي
قصور راغی وروسته افغانان اختیار لري ۰

۱۱ ـ که د انگریزي ښاغلو څخه یو ښاغلی
د خیبر واقعا توسه علت نشی کولای بیرته
لاړ شی او دولته پاتی شی د ښاغلو د هیلی سره
سم به د هغو سره ښه رویه او نیک سلوک کیږي ۰

۱۲ ـ د ټولی توپخانی او بم اچونکو
څخه چی لریږی شپږ اسی او دري کچري
توپونه چی ټول ۹ کیږي د خانه سره یو سی
او باقی به پریږدي ـ او نوابعلی ته به یی
تسلیم کړي ـ او په آینده کښي به د دولتینو
خیر او شر په گډه فکر کوي ۰ که چیرته جماعه

د مسلمینو اویا طائفه د ښا غلو انگریزا نو تر ږدي شرطونو څخه غاړه وغړوي د اسلام اهل به پخپل دین اوآئین کښی او ښاغلی انگریزان به پخپله طریقه کښی عهد ما تونکی او د روغجن وي او په عا لم کښی به ملا مته وي •

پدي تر تیب سره هغو زيږ و او شه لو خلکو د خپل ملی نا موس د پاره د دنیا د وخت د لوي امپرا طوري د فوځ نظا می منظم طا قت مات او د سیا سی لحا ظه یی هغه ته وښودو چی د دي ملت" نیمه وحشی "خلك په څو مره ساده الفا ظو او بریښید لو تورو سره د خپلو ملی ګټو سا تندوي دي •

او س بیا همدا په پښو ابل په تن لوڅ او په گیډه وږي ولی د ایمان او غیرت څخه ډ ك ملت د یو تاریخی امتحان لاندي را غلی دي که چیر ته پام ونکړي او په خپله ... را ونه نغا ړي او د خپل لوي ملی وحد...

په وسیله د دوی خوا د روس په مقابل کښی
جهاد ونکړي او د بلی خوا هم د خپل صف څخه
نفاق اچوونکی شخص گنی پا لونکی مقام
او وزارت غوښتونکی د پادشاهی د اوطلبا
ظالمان او تیري کونکی او دداسی نورو ساري
امراضو خاوندان د علاج د توري لاندي ونه
نیسی او نه جوړ يد ونکی د خپل غیزي څخه
ونه شړي نو دا ملت به د خپل محکومیت ورځی
را لنډ وي . دوي باید ثابته کړي چی د کوم
هیواد خلك خپلوا کی غواړي هغه د آزادي په
مفهوم هم پوهیږي . څوك چی شهادت قبلوي
او توپك را اخلی هغه د چا ظلم نشی قبلولی .
مونږ باید د دي جگړي په دوران کښی داسی
ملا وتړو چی د روسی یرغلگرو او د هغه د لاس پوڅو
د حکومت سره د جگړي په دوران کښی په
هیواد کښی د ظلم د له مینځه وړلو د پاره بنیاد
کیښود شی ترڅو د شهیدانو د یتیمانو
او کونډو په حقوقو لوبی ونشی ترڅو هغه

مجاهدین چی په میړانه سره یې د دي هیو-
اد پالنه کړي اوسریې ورته پلاس ښکښی نیولی
دي خپلی انسانی حق ته ورسیږي اوددي وسیله
د ملت وحدت لاپسی پیاوړي شی ○

که موږ په جګړي تینګار کوو د دي د پاره نه
دي چی زموږ جګړه خوښیږي ○ موږ ډیره
آرزو لرو چی همدا اوس جګړه بس او افغانستان
خپلواك شی ولی د اعملاً امکان نلري د اهدف
فقط د جګړي پرمخ وړلو سره لاسته راځی ○
د جګړي اوږ دول زموږ د واك ځخه بهر دي-
خو هغه څوك چی د جګړي د اوږ دوالی ځخه
مخ نیوي کوي د دوه حالاتو خالی ندي :

۱ــ یا غواړي افغانستان روسانو
ته تسلیم کړي ○

۲ــ یا غواړي په لنډه جګړه کښی
په د ښمن کامیاب شی ○

د تسلیمی د افکارو لرونکی ملت ته خائینن

دي د وي په هر لباس کښې چې وي روسا نـو ته خدمت کوي خوکلـه د مجا هدينود ويري خوله پټـه ساتې اوځينې وخت يوځاي او بل ځاي د اظهار نظر د پاره موقع پيدا کوي اوخپـــل د زهرو ډک فکرونـه تبليغوي ټولو مجا هد وتنظيمونو ته پکار دي چې د اسې خا ئينينو ته د عمـل جزاء ورکـــــړي ٠

د لنډ ي جګړي پلويان دلته اوهلته پـــه خپل ذ هن کښې خيا لې لښکري جوړ وي اوغوا ړي چې توپــټا نګ او طياره ولري اوپـــه يوه نا څا پې حملـه د روسا نو مرکزونه د مينځـه يوسې خوکلـه چې ګوري د ا سې وسائل امکا ن نلري چې موجود شي نو د غليم د طا قت څخـه يې پــه زړه سا ړه ننوځې اونا اميده شي ٠ په مجا هدينوکښې د لنډ ي جګړي فکر هغه وخت قوي کيږ ي چې يو روس طا قت ته ما تې ورکړ ي٠ دوي پــه يوه جګړه کښې خپل نسبې طا قت تــه نه متوجه کيږ ي او فکر کوي چې د وي کولاي شــ

په همدغي ړ ول د ښمن ته پــه تړ لوڅا يونو
کښې ماتې ورکړي ــحال داچې په جګړه کښې
د روسا نوکمزوري فکر کول مجا هدينوته سخـــت
تلفات رسوي ۰ خو دجګړي پــه لحظــه يې ماتې
خوړلو سره همغه څوك چې د لنډي کا ميا بې
پــه فکرکښې وي نا اميده کيږي ۰ ددا ســـــې
نظرخاوندان د يوارخ څخه بل اړخ تــــــه
لو يږي اوپــه اوږ ده منډه کښې سترې کيـــږي ۰
د لنډ ي جګړي پلويان صادق او وطن پال خلك
دي خو ددوي درك د اوسنۍ جګړي څخـــــه
با يد اصلاح شي ترڅوما تې يې ما يوســـه
نکړي ۰ دوي با يد پوه شي چې د دښمـــــن
امتياز د هغه پــه قدرت کښې دي خو زمونــز
امتياز پدې کښې دي چې مونږ د يوعادلانــــه
امر دپاره جنګيږو ــ اوهم با يد پوه شــــــې
چې زمونږ کمزور تيا پــه نظا مي طا قت کښې ده
اود ښمن د دې کبله کمزوري دي چې د يوارتجاعي

اونا حق امر د پاره جنگیزي ۰ که مونــــز
خپل امتیاز اود ښمن کمزوري اوهــــــم
د د ښمن امتیاز اوخپله کمزوري ونه پیژنـــــو
د د ښمن سره د مقابلی پــه دوران کښــی
ماتی مومو۰ د دي کبله وبلاي شو هغــــــه
خوك چی د تسلیمی افکار پــه سرکښی لري هغه
د د ښمن طاقت گوري اود افغانستان د ملــت
طاقت چی ورځ پــه ورځ مخ پــه زیا تیدو دي نه
گوري ــ اوهغه خوك چی د لندي جگړي فکرونـه
په سرکښی لري دوي د د ښمن طاقت تـــــه
پام نه کوي ۰ خو مونږ وایو افغانستان بـــــه
روسانوته تسلیم نشی او جگړه به د بري پوري
پرمخ بیایی که څه هم تر لــه لار په وینو ســره
شی ۰

زمونږ خپلواکی نه یوازی په افغانستان
کښی د سولی سره بلکه د نړي والی سولی سره
پیوند لري نو د دي د پاره چی په افغانستــــان
کښی سوله مینځ ته را شی او نړي واله سولــه

تينګه شي او د روس فاشيزم توپك پر ځمكه پريوځي بايد توپك را واخلو ــ د دې د پاره چې نوره جګړه نه اوس بايد جګړه وكړو دا زمونږ د خلكو عادلانه جګړه ده چې د روسي فاشيستانو غير عادلانه جګړه ما توي . د رست د همدي د پاره د سولي د بې ځايه ګونګسي او د تسليمد ونكو افكارو په مقابل كښې بايد ودريږو او ويري نږدو چې زمونږ د ملت پاكه لمن د دښمن د سولي د كرغيړن تبليغ ميدان وګرزي . زمونږ ملت په خپلې عادلانه او برحق جګړي سره د نړي د ارتجاع لوي مركزته ګذار وركوي او په افغانستان كښې د دې طاقت په كمزوري سره به د شرقي اروپا او په شوروي كښې د محكومو ملتونو د آزادي غږ پورته كيږي . د روسيه دا خلي تضادونه به په قوت سره سر را اوچت كړي او د سوسيال ــ امپريا ليزم خيالي ما نۍ به د ړيږوړي كړي .

۲۵ کاله وروسته په "نیمه وحشي" ګاونډ یا نو
کښی په زړه پوري نفوذ نلري اود برتانیه
قلمرو د ډیري لوي فوځي قشلي څخه د یوي ورځي
په فاصله نا محفوظه سیمه ده ـ اود سرحد
په یوه میلی کښی د یوانګریز ژوند په خطر کښی
دي".

اوهمدا سې بیکس فلډ د لارډ لیټن
څخه په انتقاد سره وویل چی: "د افغانستان
نیول باید ابدي اوجاویدانی اوسی
ترڅو د نیا عادت ونیسی چی زمونږ قدرت په
افغانستان کښی جاویدانی دي" دي مغرور
انګریزي هیڅ وقت فکر نشو کولاي چی د دي د لوي
امپراطوري منظمی لښکري د ي د بیوزلو اوغیر
منظمو مجاهدینو لخوا د ا سې د شرمی ډک
ماتی وخوري ـ او د امپراطوري د لښکروقوماندانان
د ي د حملی څخه د وه کاله وروسته د ا سې
معا هدي ته تن کښیږ د ي چی په هغی کښی

په دي ترتيب سره ويلاي شو چــــــــــــــى

افغانستان د روس د سلطى لانــــــــــدي

محكومو ملتونو د پاره د اميد ځاي اودنړي ــ

والى سولى سنگردي نوځكـــه دده شخـــه

ملاتړ د ټولو نړيوالو انسانى وظيفه ده ٠

زمونږ لاره اوږده اوهدف مو سپيڅلى دي ــ

زمونږ ملت پــه تاريخ كښى ترټولو سختــه جگړه

پرمخ بيايى اودهمدي كبله به يى نوم دآزادي

غوښتونكو ملتونو پــه سركښى ځليږي ٠ دلتــه

اوهلته ځاي ځاي كــه ناوړه افكار څرگنديږي

دا افكار بايد پــه بيرحمى رحمى وټكـــول

شـى اوريښى يى راوويستلى شى ٠ ددښمن

افكاروته ميدان ممخالى كوي دد ښمـــــــــن

سره پدي ميدان كښى هم مقابله وكـــــــــړي

اوځا نونه د اوږدي جگړي د پاره چمتـــــــو

وسا تـــــــــى ٠

والله مع الصبرين

د انگریزي دولت د شرف سره لوبی وشی ٠

دتاریخ پدي پړا وکښی د تزار وارثا نـــو
وغوښتل یوځل بیا دا ملت وآزمایی ـ اومعلومیږي
چی دخپل یرغل خوند ورځ په ورځ لا پسی ښـــه
محسوســه وي ٠ پریږ دي چی روسا نو ته هـــم
ثا بته شی چی کم ملت شهید ورکوي هغه نه اسیر
کیږي ـ همدا شهید پرور ملت دي چی د سره ـ
سیلاب پـــه مقا بل کښی یی د غوښونه فولاد جوړ
کړي او ۹ کلنه د یره بی رحمه جگړه یی پرمخ وړیده
پدي جگړه کښی د دي ملت د هقا نانو او دخمکـــی
خا وندانو ـ کارگرو اود سرما یه خا وندا نو ـ دکاندا
را نو اوکسبه کا رانو ـ محصیلنو او متعلمینـــــو
استادانواو معلیمنو ـ روحا نیو نو اود دولـــت
ما مورینو ـ پـــه ارد وکښی وطنپا لو صاحبمنصبا نـــو
اوعسکرو پـــه گډه سره د قران عظیم الشان د حا کمیت
اود افغا نستان د خلا صون تر شعار لاندي برخـــه
وا خیستـــه او د مقا ومت جگړه یی ژوند يوسا تلـــه

پدي گټه پا خون کښې د جگړي د دوام را زيږوونکي ده
که نه نو د جگړي په شروع کښې هيڅ خارجي
هيواد د مجا هدينو ملاتړ ونکړلو ـ او ټوله
نړي حتی اسلامي هيوادونه هم دي ته څير وو چي
د تره کي د حکومت مخا لفين به وکولاي شي مقاومت
ته دوام ورکړي او که نه ؟ کله چي ورته لږ لږ امید
پيدا کيدلو په ورو ورو يو بل پسی ميدان ته راووتل
چي د جگړي په گرميدلو اود مجا هدينو
د آواز په قوي کيد لو سره داملا تړ مخ په
زيا تيدو شو ، چي لا اوس هم په هيڅ صورت سره
کافي ندي ٠

زمونږ خلك بايد په ياد را وړي چي د
جگړي په شروع کښې د چا با ور نه را تللو
چي دا بي وزله خلك دي د روس ابر قدرت سره
مقا بله وکولاي شي ٠ او اوس چي يې د خپل وسله
وال جهاد په زور په نړ يوا لو خپل حقا نيت
اود جهاد دوام قبول کړيدي ، نوځاي ځاي آوا ز

پوره کیږي چې د روسانو د وتلو وروسته
په دافغانستان مجاهدین وکولای شي یو واحد
دولت جوړ کړي ؟ او که جوړ یې کړي نو دا دولت
به د کم دولت په شان وي ؟ د وي هر یو
د افغانستان آینده دولتي سیستم د خپلو دولتي
سیستمونو په حساب سنجوي . او نه پوهیږي چې
په افغانستان کښې د دوي د ملکونو په شان
انقلاب ندي شوي ــ د دوي د جګړو د قوا نینو
په حساب جګړه نده شوي ــ د دوي د تنظیمونو
په شان تنظیمونه ندي جوړ شوي ــ بلکه هر
څه اسلامي او افغاني رنګ لري او دولت به یې هم
د دوي د دولتونو په شان نه وي . خارجي
قدرتونه باید پوه شي کم ملت چې ابر قدرت را
پرزولی شي هغه خپل آینده دولت هم جوړ ولای
شي . خو دوي دي لږ څه نور هم ناظر او سیږي
او بې پر تلوار د نه کوي څکه چې دا وار بیا په
تحلیل کښې غلطیږي . لکه څنګه چې یې د مقاومت
د جګړي دوام نشو قبلولای او زمونږ ملت په

مخ یوړه ـ همدا سی که دوي د مجا هدینـــــر
پـــه‌لاس‌د دولت جوړول نشی منلاي نو زمونږ ملت
به ورته ثا بته کړي چی دوي د خپل سر نو شـــــت
د تعیین او دولت د جوړولو پوره استعداد اوتوان
لري چی پدي برخه کښی هم خارجی استاد تـــــه
ضرورت نلري •

پدا سی حال کښی چی ملت لگیا دیپه خپلـی
قهرما نی سره د نړي په تاریخ کښی نوي باب
پرا نیزي اود اوز دي جگړي د پرمخ وړلو دپاره
سنگرونـــه پیا وړي کوي ـ روسا نود خپل گوډاگــی
دولت د مشر نجیب‌گاو پـــه خوله د ملی پخلاتوب
رمبا ړه وکړه ○ چی وطن پلوړونکی ورته لبیك وایی
اود ساده گا نو سره دا سوال پیدا کیږي‌چـــــی
دافغا نستان مسئله به د سیا سی لاري حل شـــی
اوکــه نه ؟

دافغا نستان قهرمان ملت د خپل نا موس
ځه‌د دفاع‌پخا طر ټوپك پلاس‌را پورته شویدي

داملت د سولې طرفدار اود جګړې مخالف دئ
دافغانستان خلکو د حق اوعدالت په طرفداري
په یوه داسې جګړه لاس پورې کړې چې د کامیابۍ
نتیجه به یې دافغانستان خپلواکۍ اوپه نړۍ
کښې د آزادۍ اود سولې د سنګر ټینګیدل
وي ــ دداسې یو طاقت په مقابله کښې چې
په افغانستان باندې د هغه برې د اور لمن
لاپسې پراخه وي اونه یوازې د نړیمی امن
به د مینځه یوسي بلکه ټوله نړۍ به د دې جګړې
په لمبو کښې وخوټیږي ۰ په اوسنې حالت کښې
هغه ساده ګان چې دافغان ملت په درد اورنځ
باندې زړه سوزوي اوداسې فکرېږي په سرکښې
راګرځي چې نوره تباهي بس دي ــ نور د
افغانستان د بې ګناه خلکو وژل بس دي ــ نور
باید کورونه وران نشي ــ نور باید د خلکو مالونه
لوټ نشي ۰ داسې خلک باید پوه شي چې د
همدومره بس کید لو پخا طر باید جګړه وشي ۰
دوي باید پوه شي چې دا جګړه د شوروي د

امپریا لیستی منا سبا تو محصول دي اود دي
منا سبا تود نړ یوال حا کمیت د تا ٔ مین پخا طر
شر وع شویده • او زمونږ اصلی بد بختی به چی
د نا موس ــ عزت ــ شرف ــ خپلوا کی
او آزادي لوټو نه ده هغه وخت شروع کیږي
چی د هدف د لاسته را وړلو پرته زمونږ لخوا
جګړه ودریږي • هغه څوک
هغه څوک چه په بنه نیت سره د جګړي
ودریدل غوا ړي دوي اصلاً د قا تل اولوټمار
خصلت ندي پیژندلی . دوي پدینه پوهیږي چی
جګړه ولی شروع شویده ؟ اود جګړي د شروع ــ
کید لوعوامل څه دي ؟ آیا تر څو پوري چی د
جګړي د شروع کید لو عوامل موجود وي جګړه
بس کید لی شی ؟ آیا تر څو پوري چی د جګړي
اهداف لاسته نه وي را غلی جګړه بس کید لی شی؟
د جګړي د عواملو په موجودیت اود جګړي د هدف
د لاسته نه را تللو په صورت کښی جګړه نشی



# افغانستان د سولی

# سنگردی

جبهه مبارزین مجاهد افغانستان




# افغانستان د سولی سنگردی




جبهه مبارزین مجاهد افغانستان

بسم الله الرحمن الرحيم

اَتَخْشَوْنَهُمْ فَاللّٰهُ اَحَقُّ اَنْ تَخْشَوْهُ اِنْ كُنْتُمْ
مُؤْمِنِيْنَ • قَاتِلُوْهُمْ
يُعَذِّبْهُمُ اللّٰهُ بِاَيْدِيْكُمْ وَيُخْزِهِمْ
وَيَنْصُرْكُمْ عَلَيْهِمْ وَيَشْفِ صُدُوْرَ قَوْمٍ
مُؤْمِنِيْنَ • وَيُذْهِبْ غَيْظَ قُلُوْبِهِمْ ط

ترجمه :

آیا ورځخه ویریږي ـ پس خدای (ج) لایق
د دي دي چی ورځخه وویریږي که مسلما نان
یا ست ـ جنګ وکړي ور سره ترڅو
خدای (ج) ستا سو په لا سونو هغوي
عذاب کړي او رسواء کړي هغوي ـ او تا سو ته
پر هغوي فتح د رکړي ـ او د مسلما نا نو
سینوته شفا ورکړي او د دوي د زړه څخه
غم لري کړي •

التوبه ۱۳ ـ ۱٤